ورځپاڼه
هیواد
مؤسس: عبدالرووف بېنوا
د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز
چهارشنبه د رمضان المبارک ۵مه ۱۴۴٦ ق کال، د کب ۱۵مه ۱۴۰۳ ل کال، د مارچ ۵مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ۵٦۰مه، پرله پسې ګڼه ٦۵۰مه، اتمه دوره

# زابل کې د لسګونو اجباري ودونو مخنیوی شوی

د زابل ولایت د امر بالمعروف نهي عن المنکر او شکایتونو اورېدلو ریاست مسئولین وایي، چې روان ۱۴۰۳ کال کې یې په دغه ولایت کې بدی، ته د ښځو ورکولو او اجباري ودونو د ۱۳۱ قضیو مخنیوی کړی دی.د یاد ریاست رئیس خلیفه مولوي محمد ابراهیم جاوید باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د زابل د مرکز کلات او ولسوالیو په ګډون ۱۲۰ اجباري ودونو ته رسیدګي شوې، همدا راز ۱۱ قضیې چې بدو کې د ښځو ورکولو پورې تړلې وې، حل شوې دي.
نوموړي زیاته کړې، چې ۱۴ د ښځو ...۳مخ

امارت اسلامی افغانستان
وزارت ارشاد، حج و اوقاف
اوقات افطار و سحری ولایت کابل

| | |
|---|---|
| رمضان | پنجم |
| ایام | چهارشنبه |
| تاریخ | ۱۴۰۳/۱۲/۱۵ |
| افطار | ۵:۵۷ |
| عشاء | ۷:۱٦ |
| ختم سحری | ٤:٤۵ |
| آذان فجر | ٤:۵۰ |

# د معدني موادو د پروسس او صادراتو د پالیسیو مسودې تائید شوې



د اقتصادي کمېسیون د تخنیکي کمېټې نوبتي غونډه ورمه ورځ په مرمرینه مانۍ کې ترسره شوه.غونډې ته له اجنډا سره سم د مالګې پالیسۍ مسوده، د معدني موادو د پروسس او صادراتو د پالیسۍ مسوده او د هلمند ولایت په شوراب ملکي هوايي ډګر کې د شته سړې خونې د فعالولو موضوعات د بحث لپاره وړاندې شول. په غونډه کې له هرا ړخیز بحث وروسته د مالګې پالیسۍ او د معدني موادو د پروسس او صادراتو پالیسۍ مسودو ته د تأیید نظر ورکړل شو او اړوندو وزارتونو ته سپارښتنه...۳مخ

# بغلان کې د بورې فابریکه بیا فعاله شوې او۲۴ساعتونو کې ۸۰۰ ټنه تولید لري

د بغلان ولایت د بورې فابریکې مسئولینو ویلي، له اوږده ځنډ وروسته یې بیرته خپل فعالیت پیل کړی.
د دې فابریکې اجرائیوي رئیس ډاکټر نجیب الله دوراندیش ویلي، د فابریکې له ترمیم او بیارغونې وروسته یې خپل



فعالیت رسماً پیل کړی دی. د نوموړي په ...۳مخ

# بدخشان کې سوداګریز مارکېټ جوړېږي

د بدخشان سیمه ییزو مسئولینو د دې ولایت په مرکز کې د ۲۸ میلیونو ۲۰۰ زره افغانیو په لګښت د یو سوداګریز مارکېټ د جوړېدو چارې پیل کړې .په جوړو شویو مراسمو کې د بدخشان د فیض اباد ښاروال مولوي عبدالغفور سیرت وویل چې د یاد مارکېټ په جوړېدو سره به د یاد ولایت یوشمېر وګړو ته د کار زمینه برابره شي او په دې سره به د ښاروالۍ عواید زیات شي.ده زیاته کړې: دغه سوداګریز مرکز یا مارکېټ به دوکانونه،



کرایي خونې او هوټل و لري.
ورته مهال د یادې پروژې ساختماني انجنیر محبوب‌الله حمیدي وایي، چې دا مارکېټ به په څلورو پوړونو کې پر ۵۰۰ متره مربع ځمکه جوړ شي،د نوموړي په وینا، یاده پروژه به په اوو میاشتو کې د تخنیکي معیارونو په پام کې نیولو سره بشپړه شي.د فیض‌اباد یو تن اوسېدونکي مجیب‌الله حمیدي د ښاروالۍ له دې اقدامه خوښي وښوده او ټینګار یې کړي, چې سوداګریز مرکزونه د خلکو یو مهم ضرورت دي، چې د دوي اقتصادي ستونزې به راکمې کړي او ځوانانو ته به کاري فرصتونه برابر کړي.د یادونې وړ ده، چې د فیض اباد ښاروالۍ په تېرو څو میاشتو کې د ۳۴ میلیونه افغانیو په لګښت د سړک جوړونې پروژې هم پلې کړې.

# فراه کې د نوري فایبر په نښلېدو سره انټرنېټي اسانتیاوې برابرې شوې

د فراه ولایت د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ ریاست مسئولین وایي، چې په دې ولایت کې د نوري فایبر په نښلېدو سره، مېشتو خلکو ته انټرنېټي اسانتیاوې لا ډېرې شوې دي.د فراه د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ رئیس ملا عبدالمجید ابوذر وايي، چې د نوري فایبر شبکې په فعالېدو سره، د فراه د ښار او اړوندو ناحیو اوسېدونکو ته چټک او باکیفیته انټرنېټ برابر شوي او د انټرنېټ د وېش لړۍ کور په کور روانه ده.د فراه ولایت



اوسېدونکي هم د دې پرمختګ هرکلي کوي او وایي، چې د نوري فایبر په فعالېدو سره، د انټرنېټي خدمتونو کیفیت ښه شوی او خلکو ته ګڼې اسانتیاوې برابرې شوې دي.
هېره دې نه وي، چې په راتلونکي ۱۴۰۴ لمریز کال کې به غور ولایت هم د نوري فایبر شبکې سره ونښلول شي.

اروپايي ټولنه:

# افغانستان کې خپلو فعالیتونو ته دوام ورکوو



اروپايي ټولنې پر خپله اکس پاڼه کابل ته د دغې ټولنې د څو لوړپوړو چارواکو د سفر په اړه یوه خبرپاڼه خپره کړې.دغې ټولنې په خپره کړې خبرپاڼه کې لیکلي، افغانستان کې خپلو فعالیتونو ته دوام ورکوي او په زده کړې، روغتیا، خصوصي سکتور او اقتصادي وده کې د افغانانو ملاتړ کوي.د اقتصاد وزارت بیا د اروپايي ټولنې د مرستو هرکلي...۳مخ

# کندهار کې اړمنو کورنیو سره مرسته شوې

د افغاني سرې میاشتې ټولنې د کندهار زون اړوند کندهار مرستون د میوند، ژړۍ او کندهار ښار ۲۰۰ اړمنو کورنیو ته د ځان بسایني او کوچني کاروبار د ملاتړ په موخه د ۴ میلیونه افغانیو نغدي مرستې د وېشلو خبر ورکړي دی. سرچینې ویلي، چې د دې پروژې له مخې، ۹۰ کورنۍ...۳مخ

# کاپیسا کې د ۴ نویو ترانسفارمرونو د نصبولو چارې بشپړې شوې

د کاپیسا ولایت د برښنا ریاست مسئولین وايي، چې د کوهستان په حصه اول ولسوالۍ کې د ۵ میلیونو افغانیو په لګښت ۴ نوي ترانسفارمرونه نصب او ګټې اخیستنې ته سپارل شوي دي.
د کاپیسا د برښنا رئیس، انجنیر شیرین آقا فرید باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې دغه ترانسفارمرونه د افغانستان برښنا شرکت په



مالي ملاتړ نصب شوي دي.
نوموړي زیاته کړه، چې د کاپیسا مرکز، تګاب، نجراب او کوهستان ولسوالیو کې د ۹۰۰ کیلو ولټه برښنا درې نور ترانسفارمرونه هم لګول کېږي چې ورسره به ۱۶۰۰ کورنۍ د برښنا له اسانتیاوو برخمنې شي.

# ځینو ولایتونو کې قاچاقي توکي نیول شوي



د مالیې وزارت وایي؛ د ګمرکونو لوی ریاست د ګرځنده څارنې کارکوونکو په تېرو دوه اوونیو کې د نیمروز، کندهار، فراه، ننګرهار، هرات او هلمند ولایتونو په بېلابېلو سیمو کې په زیاته اندازه هغه قاچاقي توکي نیولي دي، چې قاچاق کوونکو غوښتل له ګمرکي محصول پرته یې په قاچاقي ډول افغانستان ته راوړي...۳مخ

# فاریاب کې ۱۲ شنې خونې جوړې شوې

د فاریاب ولایت د کرنې، مسئولینو په دغه ولایت کې ګټې اخیستنې ته یې د سپارل کرنیزو چارو آمر مخدوم اطلاعاتي آژانس ته وویل چې په مالي ملاتړ د ۲ میلیونه شوې ده.د نوموړي په وینا یاد



اوبولګولو او مالدارۍ ریاست د ۱۲ شنو خونو د جوړېدو او کېدو خبر ورکړي دي.د حبیب الرحمن احمد باختر یاده پروژه د ناروې سفارت افغانیو په لګښت پلې شمېرشنې...۳مخ

# د غزې ناورین؛ نړیواله ټولنه به تر څو چوپه خوله وي؟ ۲

# په روژه کې باید نرخونه ټیټ شي، نه دا چې احتکار وشي ۲

# د پاکستان له زندانونو ۴۷ افغانان خوشې شول

د کډوالو او بېرته راستنېدونکو له زندانونو خوشې شوي ۴۷ راستانه شول. دغه وزارت د سپین بولدک له لارې یاد وزارت په یوې خپرې دغه کسان د قانوني اسنادو په بېلابېلو برخو کې نیول دغه کسان شاوخوا ۴۵ ورځې



چارو وزارت وایي، چې د پاکستان تنه افغان کډوال بېرته هېواد ته ویلي، خوشې شوي کسان هېواد ته راستانه شوي.
کړې خبرپاڼه کې ویلي، چې د نه لرلو په تور د پاکستان شوي وو. خبرپاڼه زیاتوي، بندیان وو، چې د بشري...۳مخ




## د غزې ناورین؛ نړیواله ټولنه به تر څو چوپه خوله وي؟

د غزې جګړه، چې صهیونیستي اشغالګرو له تېرو ۱۵ میاشتو د فلسطیني ولس وینې د سېلاب په څېر وبهولې، لا هم د پای ته رسېدو هېڅ څرک نه لري. تمه کېده چې د جګړې د ختمولو لپاره به د خبرو اترو دوهم پړاو پیل شي او بالاخره به دا خونړۍ جګړه ختمه شي، خو اسرائیلي چارواکو یو نوی پلان وړاندې کړ. د دې پلان له مخې، د ۵۰ ورځني اوربند په بدل کې باید اسرائیلي بندیان خوشې شي. حماس دا وړاندیز رد کړ، ځکه چې دا یوازې د اسرائیلو د استعماري ستراتېژۍ یوه بله برخه وه، چې غواړي جګړه د خپلې مطلوبې سناریو له مخې کنټرول کړي، نه د واقعي سولې لپاره.

په غزه کې بشري ناورین د هرې ورځې په تېرېدو پراخېږي. صهیونیستي اشغالګرو پر بې ګناه فلسطیني ملت د خوراکي توکو پر رسولو بندیز لګولی. دا بندیز، په داسې حال کې چې د روژې مبارکه میاشت روانه ده، د فلسطینیانو لپاره د سختو ازموینو نوی فصل دی. د روغتیا نړیوال سازمان، د بشري حقونو سازمانونه او نړیوال بنسټونه باید خپل غږ پورته کړي، ځکه چې د خلکو لوږې ته پرېښودل، د هغوی د حقونو ښکاره نقض دی. صهیونیستي رژیم د جګړې د توجیه لپاره بېلابېلې پلمې تراشي، خو حقیقت دا دی چې د دوی وحشیانه یرغل یوازې د فلسطینیانو د له منځه وړلو لپاره دی. په دې ترڅ کې د بشري حقونو نړیوال سازمانونه او لوېدیځ قوتونه یوازې بې تفاوته ننداره کوي. دا چوپتیا اسرئیلو ته دا جرئت ورکوي چې نور هم وحشت ته دوام ورکړي. که نړیواله ټولنه واقعاً د بشري ارزښتونو ادعا لري، نو ولې یې د غزې د مظلومو خلکو د ژغورلو لپاره عملي اقدام نه دی کړی؟

اسرائیل د غزې د جګړې د اوږدولو او پراخولو ګواښونه کوي. دا وضعیت نه یوازې د فلسطیني ولس لپاره خطرناک دی، بلکې د ټولې سیمې امنیت ته هم ستر ګواښ پېښوي. که جګړه دوام وکړي، نو دا به د نورو هېوادونو د ښکېلتیا، د کړکېچ د پراخېدو او د بې ثباتۍ د زیاتېدو لامل شي.

د غزې جګړه یوازې هغه وخت ختمېدای شي، چې نړیوال قوتونه د فلسطینیانو د واقعي حقونو ملاتړ وکړي، د اسرائیلو یرغلیزه تګلاره وغندي او د یوه دایمي حل لپاره لاس په کار شي. د اسلامي نړۍ د نړیوالو بشري سازمانونو عملي اقدامات او د اسرائیلي یرغل پر ضد د پراخو سیاسي او اقتصادي فشارونو واردول یوازینۍ لارې دي، چې دغې خونړۍ جګړې ته به د پای ټکی کېږدي.

## په روژه کې باید نرخونه ټیټ شي، نه دا چې احتکار وشي

**محمد قاسم عزام**

روژه د عبادت، صبر، وروروولۍ او مهربانۍ میاشت ده. دا میاشت موږ ته درس راکوي چې له یو بل سره مینه، د محتاجو خلکو لاسنیو او د ټولنې د ښېرازۍ لپاره کار وکړو، خو له بده مرغه، ځینې کسان د دې مبارکې میاشتې د رحمت پر ځای، له خلکو ناوړه استفاده کوي او د احتکار له لارې د هغوی ستونزې لا زیاتوي. احتکار دا دی چې یو څوک خوراکي او ضروري توکي ذخیره کړي او بیا یې په لوړو بیو وپلوري، تر څو خپله زیاته ګټه ترلاسه کړي. دا کار نه یوازې د اسلامي اصولو خلاف دی، بلکې د ټولنې اقتصادي بې‌ثباتي هم رامنځته کوي.

اسلام احتکار حرام ګرځولی دی، ځکه چې دا د خلکو حقونه ضایع او فقیران له لا ډېرو ستونزو سره مخ کوي. رسول الله ﷺ فرمایلي: "څوک چې احتکار وکړي، ګناهکار دی." (مسلم) په بل حدیث کې راځي: "احتکار کوونکی ملعون دی." (ابن ماجه) دا ښیي چې احتکار یو ستر ظلم دی، ځکه چې دا د ټولنې د ضعیفې طبقې استثمار دی.

افغانستان یو اسلامي هېواد دی، چې الحمد لله اسلامي امارت په کې واکمن دی. دا نظام د اسلامي عدالت، اقتصادي انصاف او ټولنیزې هوساینې لپاره هڅه کوي، تر څو د خلکو اړتیاوې په عادلانه ډول پوره شي. اسلامي امارت د اسلام د مقدسو اصولو په رڼا کې د یوه عادلانه بازار د رامنځته کولو لپاره په جدي ډول کار کوي، چې هر څوک مساوي اقتصادي فرصتونه ولري او هېڅوک د احتکار، استثمار او ظلم ښکار نشي. د اسلام مبارک دین تل سوداګرو ته سپارښتنه کړې چې خپل کاروبار د صداقت، انصاف او وروروولۍ پر اساس وچلوي. رسول الله ﷺ فرمایلي: "ریښتینی او امین سوداګر به له انبیاوو، صدیقینو او شهیدانو سره یو ځای وي." (ترمذي) دا حدیث ښیي چې سوداګري د مادي ګټې تر څنګ د اخلاقي او دیني اجر لامل هم ګڼل شوې. اسلامي امارت هم د همدې اصولو د تحقق لپاره هلې ځلې کوي، تر څو تجارت د استثمار پر ځای د ټولنې د سوکالۍ وسیله شي.

د امارت مسئولینو تل له سوداګرو سره ناستې کړې او سپارښتنې یې ورته کړې چې د خلکو اړتیاوې درک کړي، قیمتونه کنټرول کړي او له احتکار څخه ډډه وکړي. د اسلامي تاریخ سترو مشرانو هم د بازارونو څارنه مهمه ګڼله، څو عدل او انصاف تأمین شي. د حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه د خلافت په دوره کې بازارونه په خاص ډول څارل کېدل، چې څوک د خلکو اړتیاوې او د ضرورت وړ شیان احتکار نه کړي او عام خلک له ظلم سره مخ نشي. حضرت عمر رضی الله عنه به فرمایل: "په بازار کې څوک مه پرېږدئ، مګر هغه څوک چې د دیني احکامو پوهه لري." (بیهقي) دا حدیث دا روښانه کوي چې سوداګر باید اسلامي اخلاق ولري، ځکه چې که هغوی انصاف ونه کړي، ټولنه به له اقتصادي بې‌عدالتۍ سره مخ شي.

حضرت علي کرم الله وجهه فرمایلي: "سوداګري هغه وخت بختوره ده چې د خلکو لپاره هوساینه په کې وي." دا ښیي چې تجارت باید د ټولنې د ښېګڼې وسیله وي، نه د یو څو تنو د ګټې او د نورو د استثمار لاره. اسلامي امارت هم همدې فکر ته ژمن دی، ځکه چې د دولت مسئولیت دا دی چې بازارونه عادلانه وساتي، د خلکو حقوق خوندي کړي او د احتکار، سود او ظلم مخه ونیسي.

په اسلامي تاریخ کې، خلفای راشدینو او د مسلمانانو عادلو واکمنانو به د بازارونو څارنه کوله، څو احتکار ونشي او عام خلک له ستونزو سره مخ نشي. د حضرت عمر رضی الله عنه زمانه د اقتصادي عدالت یوه روښانه بېلګه ده. یو ځل یوه سوداګر خورماوې ذخیره کړې، حضرت عمر رضی الله عنه ورته وویل: "یا یې بازار ته را وباسه، یا به دې اور ته واچوم!" دا په ډاګه کوي چې احتکار یو لوی جرم دی او عادل واکمنان باید د خلکو حقونه وساتي.

اسلامي امارت د همدې ارزښتونو د ساتنې لپاره هڅه کوي، تر څو د اسلام د عدل، انصاف او اقتصادي ثبات اصول پلي شي. سوداګر باید پوه شي چې د احتکار له لارې په مصنوعي نرخ لوړولو سره د اسلامي شریعت اصول هم تر پښو لاندې کېږي او دا کار د الله تعالی د قهر سبب هم ګرځي. د امارت مسئولیت دا دی چې بازارونه کنټرول کړي، خو سوداګر هم باید د روژې د تقدس احترام وکړي، احتکار پرېږدي او د خپلو مسلمانانو ورونو د هوساینې لپاره کار وکړي.

رسول الله ﷺ فرمایلي: "هغه څوک زموږ له ډلې نه دی، چې له موږ سره غش وکړي." (مسلم) احتکار هم له مسلمانانو سره یو ډول غش دی، ځکه چې دا د هغوی اړتیاوې استثماروي.

اسلامي امارت، علما، خطیبان او د ټولنې مشران باید د خلکو پوهاوی لوړ کړي، تر څو احتکار د اسلام، انصاف او د اسلامي وروروولۍ پر ضد یو عمل وګڼل شي او ټول سوداګر د اسلام د عدل او صداقت اصولو ته ژمن پاتې شي.

د روژې اصلي روح دا دی چې موږ یو بل ته خیر ورسوو، صدقه وکړو، د محتاجو لاس ونیسو او د خدای رضا تر لاسه کړو، خو افسوس چې ځینې خلک پر ځای د دې چې خپل مسلمان وروڼه خوشحاله کړي، د احتکار له لارې یې له ستونزو سره مخ کوي. دا ډول کسان باید پوه شي چې د دوی دغه عمل نه یوازې د خلکو لپاره سختي پیدا کوي، بلکې د آخرت له عذاب سره هم مخ کېدلی شي.

اسلامي امارت تل هڅه کړې چې د خلکو اقتصادي ستونزې کمې کړي او د احتکار مخه ونیسي، خو بیا هم حکومت مسئولیت لري چې بازارونه په جدي ډول وڅاري، خو عام خلک او سوداګر هم باید خپله دنده ادا کړي. که موږ غواړو چې زموږ ټولنه د انصاف او وروروولۍ پر بنسټ ولاړه وي، نو باید له احتکار څخه ډډه وکړو، د روژې د برکتونو خیال وساتو، او د اسلامي وروروولۍ اصول عملي کړو.

## روژه د عبادتونو او له بېوزلو سره د مرستې کولو میاشت ده

**شېرمحمد امیني ستانکزی**

روژه په اسلام کې له پنځو رکنونو څخه درېیم رکن دی، چې پر ټولو مسلمانانو فرض شوې ده. په دې مبارکه میاشت کې روژتیان د پېشلمي له پای څخه تر ماښام پورې له خوړلو، څښلو او نورو جسماني غوښتنو څخه ځان ساتي. په دې میاشت کې روژتیان ځانګړي عبادتونه، اذکار او نور له ثوابونو ډک افعال ترسره کوي.

د روژې په میاشت کې مسلمانان نه یوازې د خپل نفس پاکوالي ته پام کوي؛ بلکې له بېوزلو او بېوسو خلکو سره د مرستې کولو لپاره هم ځان چمتو ښیي او صدقې او خیراتونه ورکوي، نو په دې مبارکه میاشت کې له بیوزلو سره همدردي او د هغوی لاسنیوی ځانګړي ثوابونه لري.

قرآن کریم هم د روژې په میاشت کې نازل شوی او د دې مبارکې میاشتې ټول فضیلتونه یې بیان کړي دي. دا میاشت د روحانیت او عبادت لپاره یو ښه چانس دی، ځکه مسلمانان په دې مبارکه میاشت کې د الله تعالی له رحمتونو، برکتونو او مغفرتونو څخه ګټه اخلي. هغوی هڅه کوي، چې نېک اعمال ترسره کړي، ګناهونه پرېږدي، پر تېرو ګناهونو باندې پښېماني وښیي او توبې وباسي.

هر مسلمان ته په دې میاشت کې لازمه ده، چې د خپل نفس کنټرول ترلاسه کړي. د منفي خواهشاتو پر وړاندې قوي واوسي او پرې نه ښودل شي، چې نفساني غوښتنې یې پر نفس غلبه وکړي.

راځئ چې د رمضان میاشتې لپاره پوره چمتووالی ونیسو، خپل او ګاونډیان هېر نه کړو، د بیوزلو لاسنیوی وکړو او د آخرت د ورځو لپاره داسې اعمال ترسره کړو چې هغه پر موږ د ښو کړو شاهدي ووایي.

## هېواد کې د وسپنې پټلۍ پراختیا د سوداګرۍ او ټرانزیټ لپاره مهم اقتصادي ګام دی

**شاه محمود درویش**

د اسلامي امارت د مشرتابه او اړوندو مسئولو ارګانونو د هڅو او بې دریغه کوښښونو له امله د هېواد په مختلفو برخوکې زیربنایي چارې دوام لري او له ټولو مهمې او د ارزښت وړ پروژې د وسپنې پټلۍ او سړکونو جوړول دي چې دسیمې له هېوادونو سره د نښلولو ترڅنګ د هېواد په داخل کې د انتقالاتو، تګ راتګ او سوداګرۍ لپاره ګڼې آسانتیاوې رامنځته کوي، د انکشافي سیاست علماء په دې اند دي چې پرمختګ له سړک سره تړلی دی. یعنې له سړک څخه د دوی هدف ټرانسپورټي سړکونه، لارې او د وسپنې پټلۍ دي، چې په هېواد کې یې جوړېدل عملاً جریان لري، له نیکه مرغه په دې وروستیو کې د اسلامي امارت ویاند ویلي؛ چې کندهار کې، د کندهار- هرات د وسپنې پټلۍ د ۷۳۷.۵ کیلومتره پروژې د تفصیلي سروې او ډیزاین چارې پیل شوې دي. نوموړي پرخپله ایکس پاڼه لیکلي؛« د دې زیربنایي پروژې په بشپړېدو سره به د افغانستان له لارې ترکمنستان او ایران له پاکستان سره د وسپنې پټلۍ له لارې وصل شي. نوموړي دغه پروژه د سوداګرۍ او ترانزیټ لپاره مهم اقتصادي ګام بللي دی. همدا راز په دې اړه د ټولګټو وزارت ویاند هم ویلي؛ د کندهار – هرات د ۷۳۷.۵ کیلومتره وسپنیزې کرښې د تفصیلي ډیزاین چارې د شاوخوا ۲٦٤ میلیونو افغانیو په ارزښت پیل شوې دي. نوموړي زیاته کړې؛ چې د دغې پروژې د پرانیستې په مراسمو کې د اسلامي امارت ویاند، د ټولګټو وزارت د وسپنیزې کرښې مرستیال، سیمه ییزو مسئولینو، قومي مخورو، د قراردادي شرکتونو مسئولینو او انجنیرانو ګډون کړی و. ویل شوي چې یاده پروژه به د اتو میاشتو په موده کې بشپړه شي.»

له شک پرته چې د هېواد په داخل کې د وسپنې پټلۍ د کرښې پراختیا او د سیمې هېوادونه له دې لارې له یوبل سره نښلول یو ښه زیری او غوره اقدام دی. افغان ولس یې هم د زړه له کومې هرکلی کوي او ژر تر ژره یې د تحقق هیله لري.

هېره دې نه وي چې افغانستان اوس مهال په کمه اندازه د وسپنې پټلۍ په درلودو سره په سیمه کې هغه هېواد بلل کېږي چې له ټولو کمه د ریل کرښه لري، د افغانستان ټرانزیټي او ټرانسپورټي ستونزو ته په کتو سره د وسپنې پټلۍ د هېواد داقتصادي ودې لپاره ډېره مهمه ده، ځکه د وسپنې پټلۍ دسیمې له هېوادونو سره دټرانزیټي نښلیدو ترڅنګ له اقتصادي او امنیتي پلوه هم خورا ډېر ارزښت او اهمیت لري.

د ویلو وړ ده چې د افغانستان جغرافیوي موقعیت ته په کتو سره زموږ هېواد د نړۍ په کچه په وچه پورې د تړلوهېوادونو په لړکې شامل دی، ځکه چې سمندرته په مستقیم ډول لاره نه لري او دځمکني ټرانزیټ له پلوه هم دوسپنې پټلۍ دجوړېدو پربنسټ دسیمې او نړۍ له هېوادونو سره نښلیدل ورته خورا ډېر ارزښتناک دی، له بله پلوه د وسپنې پټلۍ د هېواد د کمزوري اقتصاد په وده او پراختیا کې هم خورا ډېر اهمیت لري چې د همدې اصل په پام کې نیولو سره د اسلامي امارت د مشرتابه د هڅو له امله دسیمې له هېوادونو سره د تجارتي اړیکو د ټینګولو په لړکې د ازبیکستان هېواد له حیرتانو څخه تر مزارشریف پورې د (۷۵) کېلو مترو په واټن د وسپنې پټلۍ لا دمخه جوړه شوې ده، چې له دې لارې د مختلفو توکو سوداګري له افغانستان سره جریان لري.

البته افغانستان اوس مهال دوسپنې د دریوو پټلیو درلودونکې دی چې یوه یې د ازبیکستان او بلخ ترمنځ، بله پټلۍ د ترکمنستان او تورغونډۍ ترمنځ او بله یې هم هرات - خواف ( افغانستان - ایران ) ترمنځ د ریل پټلۍ ده چې له نیکه مرغه پردرېواړو عملاً د سوداګریزو توکو صادرات او واردات ترسره کېږي، د یادونې وړ ده چې په افغانستان کې د وسپنې پټلیو او لارو جوړولو موضوع د لومړي ځل لپاره په (۱۸۷۹) میلادی کال کې د بریتانویانو له خوا مطرح شوه، خوله هغې وروسته دا چاره د بیلا بیلو عاملونو له امله په هېواد کې ځنډېدلې ده، په افغانستان کې د اسلامي امارت په راتلو سره د وسپنې پټلې جوړولو او دسیمې له هېوادونو سره یې نښلولوته یوځه پاملرنه هم وراوښتې ده،

له شک پرته چې دافغانستان ترانزیتي او ترانسپورتي ستونزو ته په کتو سره د ریل پټلی هره پروژه د هېواد داقتصادي ودې لپاره ډېره مهمه ده، په واقعیت سره چې د وسپنې پټلۍ د غځولو یادې پروژې هم دسیمې له هېوادونو سره دترانزیتي نښلیدو ترڅنګ له اقتصادي او امنیتی پلوه خورا ډېر ارزښت او اهمیت لري، نو افغان پتمن ولس هم هرهغه خوځښت او نوښت ته چې پایله یې د افغانستان د اقتصادي ودې، دامنیت او ثبات د ټینګښت او پرمختګ باعث شي د قدر په سترګو ګوري او د زړه له کومې یې ستایې، په دی هیله چې د وسپنې پټلۍ له لارې لاهم افغانستان د سیمې او نړۍ له هېوادونو ...

۳مخ

# افغـان اعــــلانات



## اطلاعیه دعوت به داوطلبی

ریاست معادن ولایت کابل در نظر دارد به خاطر عقد قرار داد معادن مواد ساختمانی ساحات ذیل را به مدت ۲ سال به عقد قرار داد بدهد.

| شمار | ولایت | ولسوالی | نام ساحه | نوعیت مواد | مساحت ساحه |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | کابل | ده سبز | بابه قشقاری | سنگ تعمیراتی | ۳۴۴۲,۳مترمربع |
| ۲ | کابل | ناحیه ۱۷ | شهرک میر غلام | سنگ تعمیراتی | ۴۷۲۳,۹متر مربع |

تمام داوطلبان می توانند به خاطر اشتراک درخواستی های خود را از تاریخ۱۳ /۱۴۰۳/۱۲ الی ۱۴۰۳/۲۵۱۲ به ریاست معادن ولایت کابل تحویل نمایند و فورمه داوطلبی را از این ریاست دریافت نمایند.

نوت:فیس اجازه نامه مبلغ (۱۵۰۰۰) پانزده هزار افغانی ، ضمانت محیط زیستی (۴۰۰۰۰) چهل هزار افغانی و ضمانت حسن اجراء به اندازه یک ربع می باشد.۹۶۱۰

### اعلان داوطلبی (۴) باب دوکاکین کوه البرز واقع ناحیه (۱۶) شهر کابل!

ریاست عمومی املاک دولتی وزارت مالیه(۴) باب دوکاکین ذیل مربوط بلاکA و B واقع کوه البرز ناحیه (۱٦) شهر کابل را به شکل آفر سربسته طور جداگانه به اعلان داوطلبی می سپارد، برای مدت(۱) سال.

۱.دوکان نمبر۲ به مساحت (٤٨,٦٨) مترمربع واقع کوه البرز ناحیه ۱٦ شهر کابل مربوط بلاک Aبه کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ(۸۰۰۰) افغانی.

کوردینات(جی.پی.اس نمبر) ٣٤,٥٢١٩٣- ٦٩,٢٠٣٥٤

۲. دوکان نمبر ٤ به مساحت (۲۷) مترمربع واقع کوه البرز ناحیه ۱٦ شهر کابل مربوط بلاکB به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ(۸۰۰۰) افغانی.

۳.دوکان نمبره به مساحت (١٧,٣٦) مترمربع واقع کوه البرز ناحیه ١٦ شهر کابل مربوط بلاکB به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ(٤٠٠٠) افغانی.

٤.دوکان نمبر١٢ به مساحت (١٥,٩) مترمربع واقع کوه البرز ناحیه ١٦ شهر کابل مربوط بلاکB به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ(٤٠٠٠) افغانی.

کوردینات(جی.پی.اس نمبر) ٣٤,٥٢١٧٨- ٦٩,٢٠٢٩٨

اشخاص حقیقی و حکمی که خواهان به کرایه گرفتن جایدادهای فوق الذکر را داشته باشند میتوانند درخواست های شان را بعد از تاریخ ١٤ / حوت/ ١٤٠٣ الی ٥/ حمل/ ١٤٠٤ به ریاست عمومی املاک دولتی تسلیم نموده شرطنامه را اخذ نمایند.

آدرس:سینما پامیر تعمیر١٤منزله، منزل٥، مدیریت عمومی ارزیابی قرار دادهای مرکز.

شماره تماس-٠٢٠٢٩٢٤٦٢٤- ٠٢٠٢٩٢٤٦٠٧.

مجلس داوطلبی تاریخ ۶ حمل ۱۴۰۳ به ساعت ۱۰:۰۰قبل از ظهر برگزار میگردد

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرار داد

بدینوسیله به تاسی ازفقره ۲ ماده چهل سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، که وزارت دفاع ملی درنظردارد تا قرارداد «امور کرایه دهی مساحت(٤٠٠ متر مربع)زمین ملکیت وزارت دفاع ملی امارت اسلامی افغانستان واقع (شادمان دارالامان-شهرکابل) دارای شماره ثبت پلان « وزارت دفاع ملی ١٤٠٣ – املاک – ٠٢٩ » که از روش داوطلبی باز داخلی طی مراحل گردیده و مطابق حکم نمبر(٨٣٥) مورخ ١٤٤٦/٩/١ مقام محترم معاونیت اول وزارت دفاع ملی قرار است با «محمد تمیم عمری ولد بصیر خان » دارنده تذکره نمبر «١٤٠٠-٠٤٠٤-٥٧٥٤٤» و آدرس «ناحیه یازدهم –شهر کابل»، به قیمت «٤٠٠ متر مربع زمین دریک ماه مبلغ ٤٠٠٠ افغانی، ٤٠٠ مترمربع زمین دریک سال ٤٨٠٠٠افغانی ومجموعه کرایه ٥ ساله ٤٠٠ مترمربع زمین ٢٤٠٠٠٠ افغانی را دربر میگیرد » بشکل طویل المدت اعطاء نماید.

اشخاص حقیقی وحکمی، درصورتیکه هرگونه اعتراض درزمینه داشته باشند، میتوانند اعتراض خویش را ازتاریخ نشراین اعلان الی مدت ۷ روز تقویمی طورکتبی توام با دلایل آن به ریاست تدارکات وزارت دفاع ملی واقع خواجه بغرا بر وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارایه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده والی تکمیل میعاد فوق الذکر وطی مراحل قانونی بعدی قرارداد منعقد نخواهد شد.

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرا رداد

بدینوسیله به تاسی ازفقره ۲ ماده چهل سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، که وزارت دفاع ملی درنظردارد تا قرارداد «امور کرایه دهی مساحت (١٩ جریب) زمین ملکیت وزارت دفاع ملی امارت اسلامی افغانستان واقع (ولسوالی بگرام ولایت- پروان) دارای شماره ثبت پلان « وزارت دفاع ملی ١٤٠٣ – املاک – ٠٣٦» که از روش داوطلبی باز داخلی طی مراحل گردیده و مطابق حکم نمبر(٨٢٧) مورخ ١٤٤٦/٩/١ مقام محترم معاونیت اول وزارت دفاع ملی قرار است با «میرویس غفاری ولد محمد امین » دارنده تذکره نمبر «١٤٠٢-٠١٠٠-٤٢٥٦٢» و آدرس «شوربازار ناحیه اول –کابل»، به قیمت «فی جریب زمین دریک ماه ١١١٩٩افغانی، ١٩جریب زمین دریک ماه ٢١٢٧٨١ افغانی، ١٩ جریب دریک سال ٢٥٥٣٣٧٢ افغانی، وکرایه پنج ساله آن مبلغ ١٢٧٦٦٨٦٠ افغانی، را دربر میگیرد » بشکل طویل المدت اعطاء نماید.

اشخاص حقیقی وحکمی، درصورتیکه هرگونه اعتراض درزمینه داشته باشند، میتوانند اعتراض خویش را ازتاریخ نشراین اعلان الی مدت ۷ روز تقویمی طورکتبی توام با دلایل آن به ریاست تدارکات وزارت دفاع ملی واقع خواجه بغرا بر وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارایه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده والی تکمیل میعاد فوق الذکر وطی مراحل قانونی بعدی قرارداد منعقد نخواهد شد.

### اطلاعیه‌مفقودی

یک قطعه فورم مهاجرت نمبر ۱۵۲۳ به اسم نعمت الله فرزند جانان مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۶۱۳

### تصمیم اعطای قرار داد

عنوان پروژه : تهیه و تدارک سیستم ایمیل سرور ( HCL Domino) برای ایمیل های رسمی پشتنی بانک )

بدینوسیله به تاسی از فقره (۲) ماده چهل سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده میشود ، ( اداره پشتنی بانک در نظر دارد ، قرار داد تهیه و تدارک سیستم ایمیل سرور ( HCL Domino) برای ایمیل های رسمی پشتنی بانک ) را به شرکت (محترم نتورکینگ افغان سکلز گروپ دارنده جواز نمبر ( D-٦٣٧٧١) واقع مسلم پلازا ، چهار راهی حاجی یعقوب ، شهر نو کابل ، را به قیمت مجموعی مبلغ (۵۹۶۸۰۰۰) پنج میلیون و نه صدو شصت و هشت هزار افغانی اعطا نماید.

اشخاص حقیقی و حکمی که هر گونه اعتراض در زمینه داشته باشند ، اعتراض خویش را از تاریخ نشر اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توام با دلایل آن به مدیریت عمومی خدمات پشتنی بانک واقع پل باغ عمومی وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارایه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرار داد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی ، قرار داد منعقد نخواهد شد.)۹۶۱۷

### اطلاعیه به کرایه دهی

شرکت امارتی ملی بس در نظر دارد یک باب ورکشاپ گاز تخنیکی گاز و پایه های توزیع آنرا واقع زنده بانان ناحیه شانزدهم کابل که در کل موازی ۱۵۰۰ متر مربع زمین را احتوا مینماید. با محلقات آن که شامل ۴ پایه توزیع تیل فعال ۱ پایه نمایدن غیر فعال ۱ پایه توزیع گاز فعال ۱ پایه نمادین غیر فعال و دفاتر کاری مجهز در دوطبقه با سیستم برق ، آب و غیره ، کرایه ابتدائی آن ماهانه مبلغ (۲۵۰۰۰۰) دو صد و پنجاه هزار افغانی در نظر گرفته شده است . ازطریق پروسه داوطلبی برای مدت ۳ سال به کرایه بدهد. شرکت های تجارتی ، لوژستیکی و گاز تخنیکی که مطابق فصل سوم ماده شانزدهم قانون تدارکات واجد شرایط باشند درخواست های شانرا ضم فوتوکاپی جواز معتبر و تذکره تابعیت از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۱۴ یوم تقویمی به مدیریت عمومی قرار داد جایداد های شرکت امارتی ملی بس واقع زنده بانان تسلیم داده شرطنامه را در بدل مبلغ ۲۰۰۰ افغانی دریافت و ملاحظه میتوانند تضمین طبق قانون نقدا اخذ میگردد.۹۶۱۶

### اطلاعیه‌مفقودی

یک قطعه حصر وراثت خط شرعی نمبر ۶۴۴/۲۵۱ مورخ ۱۳۹۲/۲/۱۰ مرتبه محکمه وثایق حوزه دوم شهر کابل به اسم عزیزه بنت محمد رسول ولدیت عبدالکریم مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۶۱۸

### اطلاعیه کندز

ریاست شاروالی خان آباد در نظر دارد در سال ۱۴۰۴ جمع آوری عواید مسلخ و یا کشتارگاه مال مواشی و حوض آببازی پارک باغ عمومی شهر خان آباد را برای مدت یک سال عقد قرار داد نماید .

آنعده اشخاص و افرادیکه خواهش اشتراک در مجلس داوطلبی را داشته باشند از نشر اعلان الی مدت ۲۱ یوم درخواست های شان را به ریاست شاروالی خان آباد سپرده و خود شان به روز داوطلبی در مقر ریاست شاروالی خان آباد حاضر شوند ، شرطنامه را میتوانند ملاحظه نمایند و تامینات نقدا اخذ میگردد.۷۸۷

---

### هیواد کې د وسپنې...

سره ونښلول شي، ځکه چې دا کارسره له دې چې د افغانستان په شمول د سیمې د هېوادونو د خلکو د نږدیوالي سبب کېږي، ترڅنګ یې اړوند هېوادونه او هم یې اوسېدونکې ترې په هراړخیز ډول اقتصادي ګټې هم ترلاسه کوي، نو پاک الله (ج) دې په خپل رحم ، کرم او پیرزوینې سره افغانان په خپل پلارنی ټاټوبی ګران افغانستان کې دهوسا اوبسیا ژوند خاوندان کړي او په هېواد کې له شته هراړخیزو اقتصادي ستونزو چې نن ورسره لاس اوګریوان دي د تل لـه پاره وژغوري او ورځ تربلې دې دسیمې او نړۍ له هېوادونو سره په مختلفو برخوکې د دوی تجارتي او سوداګریزې راکړې ورکړې لاپسې ټینګې او پراخې کړي، ترڅنګه چې لـه یوه پلوه د هېوادونو ترمنځ د سوداګرۍ او ترانزیت له اړخه د وصل ښه مرکز وګرځي او له بل پلوه په اقتصادي ډګر کې هم د ځان بسیاینې پرلور په ښه توګه پرمختګ وکړي.

### زابل کې د لسګونو...

د میراث موضوعات او ۵۸ د روغې جوړې قضیې هم حل شوې دي.د راپور له مخې، د ۱۴۰۳ کال په جریان کې ۱۰۳ شکایتونه ثبت شوي، چې له ډلې یې ۴۲ حل شوي، ۳۳ یې قضایي ارګانونو ته سپارل شوي، ۲۲ یې رد شوي او ۴ نور یې تر څېړنې لاندې دي.

د مسئولینو په وینا، دولتي ادارې او عام خلک له دوی سره همکاري کوي او توانېدلي، چې د معروفاتو اقامه، د منکراتو مخنیوي او د امر بالمعروف نوي قانون په ښه ډول عملي کړي.

### د معدني موادو ...

وشوه، څو د یادو پالیسیو په مسودو کې د اوبو او انرژۍ وزارت نظر ځای پر ځای او د نهایي تصمیم نیونې په موخه یې اقتصادي کمېسیون ته راجع کړي. د هلمند ولایت په شوراب ملکي هوایي ډګر کې د شته سرې خونې د فعالولو په اړه پرېکړه وشوه، چې د صنعت او سوداګرۍ وزارت دې د یادې سرې خونې د فعالولو لپاره وړ شرکت انتخاب او قرارداد دې د منظورۍ په موخه اقتصادي کمېسیون ته وړاندې کړي.

### بغلان کې د بورې...

خبره، د فعالیت له پیلېدو سره سم یې ۶۰ تنو ته په مستقیم او ۳۰۰تنو ته په غیر مستقیم ډول د کار زمینه هم برابره شوې.د بغلان د بورې فابریکه په هرو ۲۴ساعتونو کې له ۷۰۰ څخه تر ۸۰۰ ټنو پورې تولید لري.د یادونې وړ ده، چې د اسلامي امارت له لوري ګنې لویې فابریکې بېرته رغول شوي، چې د تېرو څو لسیزو جګړو پر مهال تخریب شوې وې.

### ځینو ولایتونو...

د دې وزارت د معلوماتو لـه مخې؛ په نیول شویو توکو کې ۱۰ زره او ۷۷۸ کیلو ګرامه چاکلیټ، ۱۱ زره او ۵۶۶ کیلو ګرامه انساني، حیواني او زراعتي درمل، درې زره او ۹۲۲ کیلو ګرامه شامپو، درې زره او ۳۰۰ کیلو ګرامه ګوړه، ۱۵ زره او ۹۲۰ کیلو ګرامه کینو، شپږ زره او ۷۸۰ کیلو ګرامه ککو، دوه زره او ۸۲۵ کیلو ګرامه لوبیا، درې زره او ۸۷۰ کیلو ګرامه رُب، یو زر او ۸۲۸ کیلو ګرامه بسکویټ، دوه زره او ۴۳۰ کیلو ګرامه پاکټي کوچ، یو زر او ۱۲۵ کیلو ګرامه د مخ کریم، یو زر او ۶۰ کیلو ګرامه اچار، یو زر او ۵۰ کیلو ګرامه مالګه، یو زر او ۳۰۰ کیلو ګرامه تار، دوه زره او ۷۰۰ کیلو ګرامه د ماشومانو پمپر، ۲۸۵ کیلو ګرامه ملایي، ۳۵۰ کیلو ګرامه مکروني، ۱۲۰ کیلو ګرامه وچې شیدې، ۴۴۸ کیلو ګرامه چسپ او ۱۱۰ کیلو ګرامه دال شامل دي.یاد وزارت زیاتوي، نیول شوي توکي او تورن کسان د نورو اجراءاتو لپاره اړوندو ګمرکونو ته سپارل شوي دي.د یادونې وړ ده، چې د مالیې وزارت د ګرځنده څارنې کارکوونکي په ټول هېواد کې ګرځنده څارنې کوي او هیچا ته اجازه نه ورکوي، چې ممنوعه او قاچاقي توکي ولېږدوي.

### کندهار کې اړمنو...

د میوند ولسوالۍ، ۹۰ کورنۍ د ژړۍ ولسوالۍ او ۲۰ کورنۍ د کندهار ښار له بېوزلو او مستحقو کسانو څخه سروې شوې وې. د ټاکل شوي پلان له مخې، هرې کورنۍ ته په لومړي پړاو کې ۲۰,۰۰۰ افغانۍ ورکړل شوې، څو پرې کوچني کاروبار پیل کړي. د یادونې وړ ده، چې د کندهار مرستون له دې وړاندې هم د ځان بسایني په موخه د ګلدوزۍ، خیاطي او کلچو پخولو په څېر د کوچنیو کاروبارونو ملاتړ کړی دی.

### افغانستان کې ...

کوي او له نړیوالې ټولنې غواړي، چې په بشري او پراختیایي برخه کې له افغانستان سره خپلې مرستې رواني وساتي.هاخوا اقتصادي شنونکي وایي، د اروپایي ټولنې لـه لوري له افغانستان سره د مرستو دوام کولی شي د افغانستان اقتصاد پیاوړې او خلکو ته د کارکولو زمینه برابره کړي. دا په داسې حال کې ده، چې اسلامي امارت تل له نړیوالې ټولنې غوښتې چې بشري مرستې سیاسي نه کړي او د افغانستان د اقتصادي پرمختګ لپاره دې په پراختیایي برخو کې هم خپلې مرستې زیاتې کړي.

### د پاکستان...

مرستو له ترلاسه کولو وروسته خپلو اصلي ځایونو ته ولېږدول شول.

### فاریاب کې...

خونې د فاریاب ولایت په ښار، پښتونکوټ، دولت اباد، قیصار او المار ولسوالیو کې جوړې شوې دي.احمد وویل چې د هرې شنې خونې مساحت ۲۱۰ متره مربع دي او د څاڅکو اوبو لګولو سیستم لري.د سیمې کروندګر وایي:«پخوا مو کرنه محدوده وه او د باران او هوا شرایطو ته مو انتظار ایسته، خو اوس کولای شو ټول کال سبزیجات وکرو.»

د یادونې وړ ده چې د اسلامي امارت په حاکمیت سره په هېواد کې د پانګونې ښه زمینه برابره شوې ده.

### برای آغاز کار...

در تاجیکستان و قرغیزستان به پایان رسیده است و پاکستان نیز با سرعت بالایی در حال تکمیل زیرساختهای خود است. انتظار میرود که کار این پروژه در پاکستان تا نیمه نخست سال جاری به پایان برسد.))وزارت آب و انرژی امارت اسلامی میگوید که آمادگیهای لازم برای آغاز کار عملی پروژه کاسا- ۱۰۰۰ در خاک افغانستان گرفته شده و در صورت تمویل این پروژه از سوی بانک جهانی کار آن آغاز خواهد شد.قدرتالله عابد سخنگوی این وزارت میگوید: (( کاسا-۱۰۰۰ یک پروژه منطقهای است و تا ۷۰ درصد کارهایش در خاک افغانستان پیش رفته است؛ ۹۵ درصد تجهیزاتش به محل نیز رسیده است؛ این که این پروژه را بانک جهانی تمویل میکند در صورت تمویل، افغانها برای آغاز کار این پروژه آماده است.» کاسا- ۱۰۰۰، بزرگترین پروژه انتقال برق تاجیکستان و قرغیزستان از راه افغانستان به پاکستان است که با عملیشدن آن ۳۰۰ میگاوات برق به افغانستان اختصاص خواهد یافت.عبدالرحمان حبیب، سخنگوی وزارت اقتصاد میگوید که امارت اسلامی در تلاش تطبیق پروژههای زیربنایی در افغانستان است. او میافزاید: « با عملیشدن این پروژه فرصتهای کاری برای هزاران تن فراهم میشود و سالانه درآمد بزرگی به دست افغانستان میرسد؛ امارت اسلامی در تلاش است با تطبیق پروژههای زیربنایی بزرگ، ثبات اقتصادی و فرصتهای شغلی را ایجاد کند.»قطبالدین یعقوبی، آگاه مسائل اقتصادی، میگوید که با عملیشدن پروژه کاسا-۱۰۰۰ نیازمندی افغانستان به برق تا حدی حل خواهد شد. «افغانستان از این پروژه میتواند بیشترین سود را ببرد؛ در کنار این، افغانستان از بیبرقی نجات پیدا کرده و فرصتهای شغلی ایجاد میشود؛ تحول در صنایع، انرژی و کارخانههای افغانستان ایجاد خواهد شد.))بانک جهانی، پیش از این اعلام کرده بود که به درخواست سه کشور همسایه افغانستان، پیشگیری از خطر تبدیلشدن این پروژه به دارایی سرگردان و برای پشتیبانی از شهروندان افغانستان کار عملی پروژه کاسا-۱۰۰۰ را از سر میگیرد.

### امریکا کې...

جلا اورلګېدنې ثبت شوې دي، چې ډېری یې په ځنګلي سیمو او مېشت ځایونو ته نږدې سیمو کې شوي دي.د راپور له مخې؛ په سویلي کارولینا کې د ځنګلونو اور چې د تېرې شنبه په ورځ پیل شو، تر اوسه پورې یې ۱۶۰۰ هکتاره ځنګل سوځولي او د استوګنې ټولنو لپاره پر جدي ګواښ سربېره، یوازې ۳۰٪ یې کنټرول شوي دي.له شمالي کارولینا څخه هم د جلا جلا اورونو راپورونه ورکړ شوي، چې تر دې دمه له ۴۰۰ څخه تر ۵۰۰ هکتاره ځنګله پورې غځېدلي دي او د کنټرول لپاره یې هڅې لاهم رواني دي.د یادولو وړ ده چې په سویلي کارولینا کې بیړنۍ حالت اعلان شوی او خه باندې ۴۰۰ اور وژونکي او ۱۲۸ د اور وژنې موټرونه د اور له امله اغېزمنو سیمو ته استول شوي دي.په شمالي کارولینا کې، د ځنګلونو ایالتي خدماتو (NCFS) د اور د کنټرول لپاره له چورلکو څخه د اوبو څاڅکي او د اور وژنې د عملیاتو په ګډون پراخ عملیات اعلان کړل.

د امریکایي رسنیو د راپورونو له مخې، تر اوسه پورې د مرګژوبلې یا د ودانیو د پراخو ویجاړېدو راپور نه دي ورکړ شوي، خو له اورونو څخه ډک لوګي د کارولینا په لویو سیمو کې د هوا کیفیت سخت اغیزمن کړي او د عامې روغتیا لپاره یې ګواښ رامنځته کړي دي.

### ننګرهار کې...

د اوربشت لـه امله مساوي پای ته ورسېده.د یادونې وړ ده، چې دغه سیالۍ به شاوخوا یوه میاشت دوام وکړي.

### تېره یوه میاشت...

سوه نهو میلیونو دوه سوه اته دېرش زرو اووه سوه درې اتیا افغانیو په ارزښت تر سره شوې دي.په ورته مهال نوموړې د تورخم دروازې د تړلو اړوند ویلي دي چې له تېرو څو ورځو راهسې د تورخم دروازې تړلو سره نه یوازې سوداګرو ته مالي درانه زیانونه اوښتي دي، بلکې په پاکستان هېواد کې یې دننه پـر افغان کډوالو خپله منفي اغېزه پرېښودلې ده، نو کډوال یوه ډېره کمزورې طبقه ده چې د جګړو او ناخوالو له امله یې هجرت ته مخه کړې ده چې نه باید د سیاست او یا نورو موخو قرباني شي، دوی ته باید ټول هغه حقوق ور کړل شي، کوم چې د کډوالو په نړیوالو قوانینو کې ورکول کېږي. د حقاني پـه خبره: د تورخم دروازه تړل نه یوازې د پاکستان هېواد کې پر افغان کډوالو اغېزه کوي، بلکې دغلته په مېشتو قومونو هم ناوړه اغېزه لري. ډېر خلک پـه بېلا بېلو برخو کې سوداګري کوي او ورته د کار زمینه برابره ده چې د دروازې په تړلو سره په نوموړي هېواد کې پر دوی ټولو اغېزه لري، نو ورته پاملرنه په کار ده تر څو د هغوی ژوند او کارو بار د سیاسي موخو قرباني نه شي. زیارمل هوتک

### د قوشتېپې کانال...

ګډون دایره شوه.

د غونډې پـه پیل کې د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ وزیر مولوي عطاءالله عمري د قوشتېپې کانال پر اهمیت او د دې طرحې د چمتو کولو پر موخو خبرې وکړې. نوموړي وویل: «د قوشتېپې کانال د جوړېدو چارې په ښه توګه مخ ته ځي او له بشپړېدو وروسته باید د دې کانال شاوخوا ځمکې پـه موثر ډول وکارول شي. پـه دې سیمو کې باید منظمو صنعتي، کرنیزو او مالدارۍ کمپلکسونو ته وده ورکړل شي. یاده طرحه همدې موخې ته چمتو شوې او نن وړاندې کېږي. د کانال مدیریت د کرنې وزارت پر غاړه دي، خو اصلي رول به خصوصي سکتور او پانګوال ولري، ترڅو له خپلو پانګونو سره د افغانستان د اقتصادي ځانبسیاینې اوښتون رامنځته کړي.»

وروسته، د کرنې وزارت د څړځایونو د تنظیم رئیس سید خالد صاحب زاده د دې طرحې جزئیات وړاندې کړل. نوموړي وویل چې دا طرحه پنځه اساسي برخې او ۹۱ موارد لري، چې د مهمو برخو په ډله کې یې د صنعتي کمپلکسونو جوړول، د ځمکو ارزونه او اصلاح، سالم مدیریت او مشري، د کانال ساتنه او مراقبت، تولید شویو محصولاتو ته بازارموندنه او پانګوالو او خصوصي سکتور ته تشویقي کڅوړې وړاندې کول شامل دي.

سید خالد صاحبزاده د طرحې ټول موارد په تفصیل سره تشریح کړل او د حاضرینو پوښتنو ته یې ځوابونه ورکړل. په دې ناسته کې د څلورو اړوندو ادارو چارواکي، سلاکاران، انجنیران او متخصصین هم حاضر وو، چې په تېرو اوونیو کې یې د طرحې په چمتو کولو کې ګډون کړی و.

دا طرحه د طبیعي سرچینو د غوره استفادې او د قوشتېپې کانال شاوخوا سیمو د اقتصادي ودې لپاره یو مهم ګام ګڼل کېږي او تمه ده چې د خصوصي سکتور او پانګوالو په همکارۍ به په دې سیمه کې مثبت بدلونونه رامنځته کړي.

### بغلان کې...

زمینه برابره شوې ده.))بله خوا هېواد ته راستانه شوي ماشومان خوښ دي او لـه همدې لارې د خپلې کورنۍ اړتیاوې برابروي.له ایرانه راستانه شوي ماشومان سلیمان او شعیب وایي، له ۷۰ تر ۱۰۰زره افغانیو پورې ورته د حرفوي کار او کوچنیو کارونو زمینه برابره شوې.« زه ایران ته د کورنیو اقتصادي ستونزو له کبله تللی وم او هلته مـې د موبل یا کوچ جوړولو برخه کې کار کاوه، چې د کار پرمهال ونیول شوم. اوس شکر دی دلته راته دولت د کار زمینه برابره کړې او د کورنۍ چاره او پرده مې پرې کېږي.» (( زه پـه ایران کې یو کال او پنځه میاشتې وم، چې پولیسو ونیولم او رد مرز یې کړم. اوس دلته کار کوم پلار مې ویني، ډېر خوشحالېږي. دولت له موږ سره وعده کړې، چې د موبایل جوړولو برخې وسایل او امکانات درکوو؛خو موږ ورته په تمه یو.))ورته مهال د بغلان اوسېدونکي وایي، حکومت دې په کور دننه د کارخونو پر جوړېدو سره خلکو ته کاري فرصتونه برابر کړي؛ ترڅو کورنۍ اړې نه شي، چې خپل کم عمره ماشومان نورو هېوادونو ته د مزدورۍ لپاره واستوي.د بغلان ولایت اوسېدونکی سلیمان یې په اړه وایي: (( له حکومته مو غوښتنه دا ده، چې په هېواد کې دننه دې لوی، لوی شرکتونه او فابریکې جوړې کړي، چې ځوانان دلته پـه کار شي او بهرنیو هېوادونو ته ولاړ نه شي.»دا په داسې حال کې ده چې د اقتصادي چارو مبصرین نورو هېوادونو ته د افغان ځوانانو د کډوالۍ یو لامل بېکاري ګڼي.ډېر دغه ځوانان په ناقانونه او خطرناکو لارو نورو هېوادونو تـه د کډوالۍ هڅه کوي چې یو شمېر یې په دې لاره کې خپل ژوند له لاسه ورکوي.

### د غور منار ...

د منار جام سیمه کې هوټل د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت لـه پراختیایي بودیجې څخه د شاوخوا ۱۶ میلیونه افغانیو په لګښت جوړ او ګټې اخیستنې ته اماده شوی دی.د ښاغلي دوست په وینا؛ د روان کال تر پایه به په کاپیسا، نورستان او پکتیا ولایتونو کې هم د هوټلونو جوړولو چارې بشپړې او ګټې اخیستنې ته به وسپارل شي، له دې وړاندې په یادو ولایتونو کې د سېلانیانو د اوسېدو لپاره د مناسبو ځایونو شتون نه درلود، چې د دې هوټلونو په جوړېدو سره به هېواد کې د ګرځندوي صنعت پراختیا ومومي او د سیلانیانو لپاره به لازمې اسانتیاوې رامنځته شي.

### د کابل د جوی...

، هلته یې ورته ویلي ، چې پیسې ورکوي، خو تر اوسه نـه دي ورکړ شوي.)) د کابل یو بل اوسېدونکی، غلام جیلاني تیمورشاه هم وایي: (( ګنه ګوڼه ډېره زیاته وه، د هغې د کمولو لپاره دا کار ډېر ګټور دی. حقیقت دا دی چې خوشبین یو.))د کابل ښاروالۍ د مسئولینو په وینا، د جوي شیر سړک د پراختیا پروژه به د خنډونو له لرې کولو او استملاک وروسته، په بنسټیز ډول پیل شي.

### امریکا پر اوکراین ...

له هغه کړې، چې په سپینه ماڼۍ کې یې د اوکراین له ولسمشر ولادمیر زیلنسکي سره غونډه په ناندریو بدله شوه.

# Hewad Daily

چهارشنبه د رمضان المبارک ۵مه ۱۴۴٦ق کال د ۱۴۰۳ ل کال د کب ۱۵ مه د 2025 م کال د مارچ5مه



د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲٦۳٤۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱
گرافیک دیزاینر: رومان (عظیمی)

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ کابل - افغانستان
دارېکو شمېره: ۰۲۰ - ۲۵۲۶۳۴۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼي انټرنېټي پاڼي دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳


وزارت آب و انرژی:

## برای آغاز کار عملی پروژه کاسا ۱۰۰۰ آمادگی داریم



دلیر جمعه، وزیـــر انرژی و منابع آب تاجیکســـتان، اعلام کرده که پروژه انتقال برق «کاســـا-۱۰۰۰» تا دو ســـال آینده بـــه بهره‌برداری می‌رســـد.او، روز دوشنبه در یک نشســـت خبری در تاجیکســـتان گفت کـــه پروژه کاســـا- ۱۰۰۰ از بزرگترین پروژه‌های منطقه‌است که با بهره‌برداری آن این کشـــور، قرغیزستان، افغانستان و پاکستان با هم وصل می‌شـــود.وزیر انرژی و منابع آب تاجیکستان، افزوده که کار عملی این پروژه در این کشور و قیرغیزســـتان تکمیل شده و در افغانستان و پاکستان نیز ادامه دارد.

(( کار این پروژه...ص۳

## امریکا کې اورلګېدني نږدې ۲۰۰۰ هکتاره ځنګلونه سوځولي

امریکايي رسنیو په شمالي او سویلي کارولینا کې د پراخو اورونو راپور ورکړی دی. دا اورونه د وچې هوا او سختو بادونو له امله د دوهمې پرله پسې ورځې لپاره په چټکۍ سره د خپرېدو په حال کې دي. سي ان ان ورېمـــه ورځ ناوختـــه




راپور ورکړ چې د شمالي او سویلي کارولینـــا په ایالتونو کـــې له ۱۷۵ څخه‌زیاتې...

۳مخ

## د قوشتېپې کانال د شاوخوا ځمکو د معقولې استفادې طرحه اړوندو ادارو ته وړاندې شوه



د قوشتېپې کانال د شاوخوا ځمکو د معقولې اســـتفادې طرحه، چې د کرنې، اوبولګولـــو او مالدارۍ وزارت د اړوندو ادارو په همکارۍ چمتو کـــړې، په یـــوه غونډه کې د امـــارت لوړپوړو مســـئولینو ته وړانـــدې شـــوه. یـــاده طرحـــه د قوشتېپې کانال د شاوخوا ځمکو د اغېزمنـــې اســـتفادې لپاره چمتو شـــوې، چې په همـــدې موخه په کرنـــې وزارت کې یـــوه غونډه د کرنې، اوبولګولـــو او مالدارۍ د وزیـــر مولوي عطاءاللـــه عمري، د کور او ښـــار جوړونـــې د وزیر مولوي حمدالله نعـــماني، د مالیې د وزیر حاجي مـــلا محمد ناصر آخند، د چارو ادارې د رئیس مولوي نورالحق انور، د کرنې او مالدارۍ د مرســـتیال مولـــوي صدراعظـــم عثماني او د اوبو او انرژۍ وزارت د مرستیال مولوي مجیب الرحمن آخندزاده‌په...

۳مخ

د کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو وزارت:

## تېره یوه میاشت کې نږدې ۷۰۰۰۰ اړمنو کورنیو سره مرسته شوې




د کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو وزارت ویاند عبدالمطلب حقاني د هېواد ورځپاڼې خبریال ته په رالېږل شـــوي غږیز پیغام کـــې ویلي دي چې د یاد وزارت او همکارو بنســـټونو په مرسته د هېواد په ټولو ولایتونو کې د روان کال په ســـلواغې میاشت کـــې ۶۵ زره او ۶۳ بـــې ځایـــه شویو، راستنو شـــویو او اړمنو کورنیـــو سره نغدي، غیر نغدي، خوراکـــي، غـــیر خوراکـــي، د روغتیایـــي کڅـــوړو، خېمـــو او د ژمنـــۍ البســـې مرســـتې د (۲۰۹۲۳۸۷۸۳) د دوه ...

۳مخ

## ننګرهار کې د رمضان جام د کرېکټ سیالۍ پیل شوې

د ننګرهـــار ولایت د بدني روزنې او ورزش ریاســـت په همکارۍ د مرکز جلال اباد ښـــار په سراج العمارت بڼ کې د ۴۰ لوبډلو ترمنځ د ښـــاریانو لپاره د ســـالمې تفریح برابرولو په موخه د رمضان جام په نوم د ټیپ بال کرېکټ سیالۍ پیل شوې.سرچینې باختر اطلاعاتي اژانس ته ویلي چې د یادو سیالیو لومړنۍ لوبـــه د سرحد تره خېلو کلب او زاخېلـــوال کلب لوبډلو ترمنځ ترسره شـــوه، چې په پایله کې د باران ...

۳مخ

## خوست کې ۸۲۵ زده‌کوونکو ته د «اصول صنفي» زده‌کړو ټولګي برابرېږي

د خوســـت د پوهنې ریاســـت څخه په لېـــږل شـــوې خبرپاڼه کـــې ویل شـــوي ،چې دغـــه ولایت کـــې ۸۲۵ زده‌کوونکـــو ته د «اصـــول صنفي» زده‌کـــړو لپـــاره ټولګـــي برابرېږي. دغه ټولګـــي د پوهنې ریاســـت او یوې همکارې موسســـې له لوري په څلورو ولســـوالیو کـــې جوړېږي. خبرپاڼه کـــې زیاته شـــوې چې یاد ټولګي په نادرشـــاه کوټ، دوه‌منده، اســـماعیل‌خېلو منـــدوزي او ګربز ولســـوالیو کې جوړېـــږي چې ۸۲۵ زده‌کوونکـــي بـــه پـــه‌کـــې جـــذب شي.خبرپاڼه کې راغلي چې همکارې موسسې د پوهنې ریاست مسئولینو سره ژمنه کړې چې ټول فعالیتونه به د پوهنې وزارت د تفاهمنامې پربنسټ مخته یوسي او هڅـــه به وکړي چې په هغو ســـیمو کـــې د اصول صنفي زده‌کړو ټولګي جوړ کړي چې ډېره اړتیا یې لیـــدل کېږي.خبرپاڼه کې د همکارې موسسې نوم نه‌دی اخیستل شوی، خو زیاته شوې چې د پوهنې ریاست دا مهال له ګڼو همکارو ادارو سره د پوهنـــې وزارت پـــه همغږۍ تفاهمنامې لري او د زده‌کوونکو لپاره په مختلفو برخو کې خپل فعالیتونه کوي.



## بغلان کې لسګونو ماشومانو ته د حرفوي زده کړو زمینه برابره شوې

په بغلان کې د ځینو مرســـتندویو بنســـټونو له لـــوري د شـــاوخوا ۱۱۰ راستنو شویو ماشومانو لپاره د حرفـــوي زده‌کـــړو او کوچنیو کاروبارونـــو زمینه برابره شـــوې. ددغـــه ولایـــت د کار او ټولنیزو چارو رئیـــس نصرت الله پارســـا وایي: دغه ماشومان په تېرو درېوو کلونو کې په ایران او ترکیه کې له نیول کېدو وروسته، بېرته هېواد ته رالېږدول شوي دي.

(( د ۱۴۰۱ کال لـــه پیله تراوســـه، د کار او ټولنیزو چارو ریاست ته له بهرنیو هېوادونو راســـتانه شوي تقریباً ۷۰۰ ماشـــومان له موږ سره ثبت شوي، چې له ډلې یې اوسمهال ۱۱۰ تنو تـــه د کار او حرفوي زده کړو...

۳مخ

## د غور منار جام سیمه کې سیلانیانو ته هوټل او مېلمستون جوړ شوی

د اطلاعاتـــو او فرهنګ وزارت د پلان او پالیســـۍ ریاســـت له لوري په هېواد کې سیلانیانو ته د اســـانتیاوو برابرولو په موخه جام په ســـیمه کـــې د هوټل او مېلمســـتون جوړېـــدو چـــارې بشپړې او ګټې اخیستنې ته تیار شوی دی.



غور، کاپیسا، نورستان او پکتیا ولایتونو کې د هوټلونو جوړولو په لړ کې د غـــور ولایت د منار د پـــلان او پالیســـۍ رئیس قاري فدامحمد دوســـت وایي، د غور ولایت...

۳مخ

## امریکا پر اوکراین پوځي مرستې وځنډولې

یو شمېر امریکایي رسنیو د سپینې ماڼۍ د یـــوه لوړپـــوړي چارواکي له قوله خبر ورکـــړی، چې متحدو ایالتونو له اوکراین سره خپلې ټولې پوځي مرســـتې او د وســـلو ورکړه ځنډولې ده.یـــاد چارواکي ویلي، دا مرستې به تر هغو بېرته پیل نه شي، تـــر څو چـــې د اوکرایـــن مشران د سولې لپاره خپله رښتیني ژمنتیا و نه ښیي.د راپورونو له مخې، ټول هغه امریکایـــي نظامـــي تجهیزات چې دا مهال په اوکرایـــن کې نه دي، په ځانګړې ډول هغه وســـلې چې په الوتکو او بېړیو کې د لېږد په حال کې دي یا په لهستان کې د ټرانزیټ په زونونـــو کې د لېږد پـــه تمه دي، درول شـــوي دي.ټرمپ دا پرېکړه درې ورځې وروسته...

۳مخ

## د کابل د جوی شیر سړک د پراخولو په موخه د کورونو استملاک پیل شوی

کابـــل ښـــاروالۍ د جوي شـــیر په ســـاحه کې له ســـلو د زیاتو جایدادونـــو د اســـتملاک او تخریـــب خبر ورکـــوي.د کابل ښـــاروالۍ له لوري تـــر پل ارټل پـــورې د جوي شـــیر ســـړک د غځولو او په زیر زمینې ســـیمه کې د ښاري ګڼې ګوڼې د کمولو په موخه له سلو زیات ملکیتونه اســـتملاک او ورانېږي.کابـــل ښاروالۍ جوي شیر سړک د دې ادارې لـــه مهمو پـــروژو بولي او زیاتوي ، چې دا ســـړک یو زرو ۸۶۹ مـــتره اوږدوالي لري. د کابل ښـــاروالۍ اســـتازي، نعمت‌الله بارکزي په دې اړه وایي: (( د دې سړک په جوړولو سره هغه لویه ستونزه، چې د ساحې تر ځمکې لاندې برخه کـــې حضور لري، کمېږي او د ســـړک جوړولو په لړ کې ۱۲۷ ملکیتونه استملاک شـــوي او د خنډونو لـــرې کول هـــم دوام لري.))یو شـــمېر هغه اوســـېدونکي، چې کورونه یې استملاک شـــوي، که څه هم د جوي شیر سړک د پراختیا پروژه ســـتایي، خو له ښاروالۍ غواړي چـــې د دوی د ملکیتونو پیســـې ورکړي. د کابل اوســـېدونکي، شـــفیع غني زاده وایـــي: (( ویل شـــوي وو چې د تخریب پیسې به ژر تر ژره په درېوو برخو کې درکـــړل شي او هره کورنۍ چې کور یې تخریب او اســـتملاک شـــوی، ناحیې او ښـــاروالۍ ته ورغلې...



۳مخ

## لوګر کې ۲ پراختیایي پروژې بشپړې شوې

د پل علم ښـــاروالۍ مســـئولین وایـــي، چـــې د ښـــاروالۍ لـــه بودیجـــې څخـــه تمویل شـــوې دوه پراختیایي پروژې بشـــپړې او ګټـــې اخیســـتنې ته ســـپارل شـــوې دي.سرچینـــې باختـــر اطلاعاتي آژانـــس ته ویلي، چې په یادو پروژو کې د دغه ښـــار پـــه پایخېلو ســـیمه کـــې د ۱.۳ میلیونـــو افغانیو په لګښـــت د ۱۹۰۰ مـــتره مربـــع پلیو لارو د تېرو لګولو او په هونې ســـفلا ســـیمه کې د یو میلیون افغانیو په لګښـــت د ۸۵۰ مـــتره مربع وســـپنیزې کټارې نصبول شامل دي.سرچینـــه زیاتـــوي ، چې د یادو پروژو چـــارې په درېوو میاشـــتو کـــې بشـــپړې شـــوې دي.یادې ښـــاروالۍ ویلي، چې تېر کال یـــې هـــم د ۴ میلیونو افغانیو په لګښت ورته پروژې پلې کړې دي.